# د کتاب ځانګړنې


د کتاب نوم: د ژوند پاڼې

شاعر: عزت الله شمسزی

خپروندوی: د لغمان فرهنګي ټولنه

د خپرونو لړ: ۹

چاپشمېر: (۱۰۰۰) ټوکه

کمپوز: خپله شاعر

د پښتي ډيزاين: حشمت الله ناصری

چاپ کال: ۱۳۸۶ل - ۲۰۰۷ م




خوږو ملگرو ته مې چې تل
یې مینه راکړې

# اغزو ته موسکا

لاس مې پورته کړی یوه نوې دعا غواړمه
نن به زه له خدایه خیر د ټولې دنیا غواړمه

ژونده ما له تانه کله لویه تمه کړې ده
زه خو دې دنیا کې بس یوه خوله خندا غواړمه

ډېرو فقیرانو، زیارتونو باندې ګرځمه
خدای نه چې څه غواړمه اول په کې تا غواړمه

شړق وهه بارانه چې غوټۍ له تندې مړې نه شي
زه مې په ځان نه یم دې اغزو ته موسکا غواړمه

موږ خو دې تورتمه له دې ژونده پښیمانه کړو
لار ورکړه سپېدو ته سبانو ته سبا غواړمه

ته راغلې یو نور راغی تیارې مې له زړه ووتې
دغه یوه شپه درنه تر ډېره رڼا غواړمه.

# زړونه، ارمانونه

دلته زموږ په ارمانونو باندې څه ونه شول
ته څه خبر يې زموږ زړونو باندې څه ونه شول

په دې وطن کې په ستم پسې ستم روان دی
ددغو خلکو په سرونو باندې څه ونه شول

دلته څه خلک دي جنت د ژوند په بيه پلوري
په دې دنيا کې جنتونو باندې څه ونه شول

ستوري به څنګه تر سحره پورې ورسېږي
بېګا د ستورو امېلونو باندې څه ونه شول

زموږه لويې لويې دښتې خود له تندې نه مري
زموږ څپو څپو سيندونو باندې څه ونه شول

وحشت يې لا په پرهرونو باندې لوبې کوي
ددې ولس په غيرتونو باندې څه ونه شول

# بادونه

بې کوره شنو بادونو چېرته بلې خواته لاړشئ
زموږ له زخمي غرونو چېرته بلې خواته لاړ شئ

بس ستړي يو ډېر ستړي، نوره مينه غواړو مينه
پرديو ارمانونو چېرته بلې خوا ته لاړ شئ

اورونو موږ په لپه کې اوبه ورکړې چې شنه شي
زموږه له باغونو چېرته بلې خوا ته لاړ شئ

مات شوي ګلدانونه اوس ګلان کرو نغري کې
سپرليو او ګلونو چېرته بلې خوا ته لاړ شئ

لاسونه د سپېدو مو ګرېوانو ته در لنډېږي
بدبختو تورتمونو چېرته بلې خوا ته لاړ شئ.

## لنډې قیامت

کلي کې کوکنار سپړي ګلونه ته به چېرته يې
ناځي له مستۍ نه چنارونه ته به چېرته يې

اور شوه هغه تنده چې په زړه کې مې ساتلې وه
غېږکې مې رانغاړي ارمانونه ته به چېرته يې

ناست يمه وړو وړو هنداړو ته د اوښکو مې
ورک وي رانه ټوله شپه خوبونه ته به چېرته يې

راشه چې له زړه هره پرده پورته کومه زه
وایم لاروي باد ته حالونه ته به چېرته یې

اوس هم هره ورځ کلي کې جوړ وي یو لنډی قیامت
شاوخوا د سترګو وي جنګونه ته به چېرته یې.

ژبړ مازیګری دی ددیدن دعا مې وکړله
لپه مې شمسزیه کړل لاسونه ته به چېرته یې.

## دپېغلو سترګو سلامونه

سحر هغسې نه وي، مازيګر هغسې نه وي
اوس زړه مې بند په څښو کې د لمر هغسې نه وي

يو خوب و پو پناه شو چې په خوب کې مې ليدلې
اوس ډېر خوبونه وينم خو منظر هغسې نه وي

چې کله هم باران وشي دغرونو غاړې ګورم
سپرلی وي او ګلونه خو يو غر هغسې نه وي

اوس ما ځوروي نه، د پېغلو سترګو سلامونه
دا زړه مې خدايزده مات شو که نظر هغسې نه وي

نن سترګې غړولی شو تيارو کې ستوري وينو
تر عمره به زموږه مقدر هغسې نه وي

يو درد مې و په زړه کې چې غزل زما غزل و
اوس هم شعرونه ليکم خو اکثر هغسې نه وي

# کمزوری

نیمه شپه یو څوک وځي له ښاره خو هېڅ نه وایي
ونیسي له ستورو سره لاره خو هېڅ نه وایي

دلته یو مېن دی هسې نورې فلسفې وایي
ټوله شاعري یې ستا لپاره خو هېڅ نه وایي

ګل چې مجبورۍ نه د اغزو غېږه کې وخاندي
داسې پښتنې هم شي ناچاره خو هېڅ نه وایي

سوځي پښتنه لکه ډیوه تاوه راتاوه شي
غلې د جانان له خړ مزاره خو هېڅ نه وایي

څه وکړي کمزوری دی له ژوند سره جنګ نه کېږي
ستړی دی شمسزی له خپل روزګاره خو هېڅ نه وایي

## یوه سپوږمۍ

ګـتـه د هـر چـا زمـا زیـان خـوښـېـږي
دژونـد لـپـاره مـې ارمـان خـوښـېـږي

خانده چې اوښکې دې لـه سترګو راشي
لـمـریـنـه ورځ کـې مـې بـاران خـوښـېـږي

یـوه سـپـوږمـۍ پـه کـې مـلـګـرې لـرم
ځـمـکـې تـر تـا مـې ډېـر اسـمـان خـوښـېـږي

دمـاشـومـانـو روان سـتـوري خـوښ وي
خـو زمـا خـوځـنـده انـسـان خـوښـېـږي

شـمـسـزیـه ښـکـلـي مـیـنـه څـه پـېـژنـي
ددوی دسـرو زرو بـوتـان خـوښـېـږي.

# د ستورو گاونډی

خدایه دا څه وشول نه مړ او نه ژوندی شومه زه
هسې پر ځمکه بار بې لاسو پښو نیالگی شومه زه

موړ څو یاران همدې یوه خاوره کې وغوړېدو
خو څوک نرگس شول څوک گلاب، منځ کی اغزی شومه زه

اوس رانه څه پوښتې چې څنگه مې زړه تاته درکړ
زه هم پوهېږم نه چې څنگه لېونی شومه زه

زمانې ووایه معیار د ښه او بد څنگه دی
په څه دې خپل شوم او په څه درنه پردی شومه زه

پرون په خیال کې د سکروټو پر غره وختمه
ښکارې ستا مینه کې د ستورو گاونډی شومه زه.

# څپې څپې خبرې

د ژوند د ورکې فلسفې غوندې خوږې خبرې
وکړې جانان په لنده ساه وړې وړې خبرې

نن يې پر شونډو باندې وېره دغماز خوره وه
پټې يې وکړلې د سترګو اينې خبرې

زما پر زړه دې رپ د سترګو دومره درونډ پريوځي
لکه چې کلي کې مشران کوي پخې خبرې

دلمر له وړانګو نه شرمېږي چې رسوا يې نه کړي
سپوږمۍ او ستوري کړي يو بل سره د شپې خبرې

شمسزيه داسې چې له تورو نه نغمې جوړوي
دکلي سيند درته راوړي څپې څپې خبرې

# ورکې سندرې

دا څه موده مې ورکې وې سندرې ستا په څېر
خپه وې ګرځېدې به رانه لرې ستا په څېر

ما زړه پرېښود د ګونګې کلیوالې په پلو کې
که نه ښار کې وې ډېرې ژبورې ستا په څېر

یو څو ورځې دقافـله ښاپېریو سره هم وم
والله چې دومره نه وې جادوګرې ستا په څېر

دچا دمینې زور دشنې ګنبدې ملنګان کړل
اوسېږي په زيارت کې شنې کوترې ستا په څېر

شاعره! خیال زما هم تل ـــ له عرشه راتاوېږي
خو نه لرمه ذهن کې خبرې ستا په څېر

شمسزیه دومره ډېر نه دي یو څو کسه په شمار دي
چې اوسي ــ له منطق او عقله لرې ستا په څېر.

# لمر پر لاره

نن ګهيځ بيا د لمر د تلو پر لاره
يوه غوټۍ د ګلاب وغوړېده،
او د تنکيو اننګيو،
پـه وړمو يې،
فضا ښکلې
کړله،
خو، خدايزده،
لمر ته و نن چا د کبر جام ورکړی؟
چې له غروره يې،
ولاړو سلامي ګلو ته ونه کتل
او له غصې نه يې دمخ له کاسې،
ګرمې لمبې،
وشيندلې،

لمر ،
نن دګلو ، ارزښت ، ونه پېژاند ،
لمر ،
 دیوې ورځې په ژوند
او په ښایست ، وغولېد .
خو چې ماښام شو ، دختیځ له لوري ،
دتورې شپې ، ګزمې را وختلې .
لمر بیا دکبر جام ، پر سر واړاوه
او ، د تنکیو ، ګلغوټیو ، په څېر
دخپل غرور ،
پر بستر ،
پرېوتلو .

# د زړه لمبې

چې زه يې وسوم ستا دې هره ادا اور واخلي
ستا دې څپه څپه ځواني او ښکلا اور واخلي

د زړه لمبو نه زه هېڅا ته شکايت نه کوم
زه سوی ښه يم هسې نه چې دنيا اور واخلي

له اغزو پرته دګلونو څانګې بدې ښکاري
بې ــله غمونو دې دژوند هره سا اور واخلي

لکه پتنګ اور په وزرونو کې اسمان ته وړمه
هڅه مې داده چې دا توره فضا اور واخلي

ته چې يو ګام هم دنږدې راتللو زيار نه کاږې
دخدای په امان ستا دې ـله لرې موسکا اور واخلي.

# ښېرا

څه چاره په کار ده یاره دلته بیا لېونی کېږم
جانان سم راسره نه ځي په والله لېونی کېږم

په ډېر صبر صبر یاره زما زړه لمبه لمبه شو
اوس مې عقل لوګی کېږي خامخا لېونی کېږم

ما مې وینه نذرانه کړه چې سپرلی په دې ښار راشي
چا لاسونه لپه کړي، کړي ښېرا لېونی کېږم

دې مړ ژواندي شان مالت کې ټول غمونه را په شا شول
ته دتورو غرو مارغه شوې، زه تنها لېونی کېږم

ښکلي سم لکه هنداري هر سړی په کې ځا ن ويني
د ازل وېش کړمه پاتې، بېنوا لېونی کېږم

که لوېدم غېږ کې مې نيسه نن مې بخت سره جګړه ده
په اغزو کې مې مزل دی کړه دعا لېونی کېږم.

# ګیلې

سپوږمۍ د ورځې لاس ته راشي رانه ببرته تښتي
لپه مې ډکه له ښکلا شي رانه ببرته تښتي

جانانه اوس چې توره شپه کې کله لار ورکوم
سترګې دې يادې کړم رڼا شي رانه ببرته تښتي

زړه کې مې ډېرې ګيلې شته خو زړه مې تاسره دی
لږ څه مې ذهن کې پيدا شي رانه ببرته تښتي

دجانان وصل وي يوه شېبه بېلتون سر او کال
مياشت کې يوه ورځ نيمه پخلا شي رانه ببرته تښتي

مړوند په سترګو باندې کېږدي چې حال ونه وايي
ماته راګوري په خندا شي رانه ببرته تښتي.

# سکوت او شور

داسې وخت هم و چې به ما په لويه لاره ژړل
ماشوم زړګي به مې له ګله هم له خاره ژړل

ما به د خپل زړه سوې ساندې هم سندرې کړلې
ستا جدايۍ کې چې به ما دا ستا لپاره ژړل

هغه بدرنګې شپې هم زمونږ په چم تېرې شوې
چې به مو سپينه ورځ د تورې شپې له داره ژړل

چې به مې ياد شوې تيارو خونو کې ښوزلې حورې
ما به د ښار هرې ډيوې ته تر سهاره ژړل

شمسزيه څه ښکلې جګړه وه د سکوت او د شور
دې له ټينګاره زما، ما يې له انکاره ژړل.

# الماس

څوک چې یو ګام راسره لاس په لاس شي زړه ورکوم
چې راښکاره په چا کې لږ اخلاص شي زړه ورکوم

غېږه مې هر چا ته پرانیستې یم چینه د مینې
ښکلی که هرڅومره تېره الماس شي زړه ورکوم

دغرو او دښتو ساده خلک یو چل نه پېژنو
چې لږ دښمن هم راته ټیټ و پاس شي زړه ورکوم

ورځم د تورو غرو تر شا ویدې جذبې ویښوم
که مې ملګری څوک په دې احساس شي زړه ورکوو.

## دعا

جوړ مې لـه ښـېرو نـه شي دعـا پـه دغـه ښار کې
ښکاري چې قبلـېږي نـه ښـېرا پـه دغـه ښار کې

خدای تـه بـه لاسونـه پـه دې هیلـه لـپـه نـه کړم چې
دا سـړی غـلام کـړه دا پـاچـا پـه دغـه ښـار کـې

مـوره لـېـونـي دڅـلـورلارو یـو خـو ورځ راځـي
پـېغلې بـه شینـدي پـر مـوړ ښکلا پـه دغـه ښار کې

خدایه قرباني زموږ ددې لپاره نه وه چې
چور دې شي ښایست لوټه حیا په دغه ښار کې

دغه فیصله به ستا همزولو باندې وکړمه
شوم که مخامخ درسره بیا په دغه ښار کې

وړاندې زمانه درسره نوره یاري نه کړي
گرځه یو څو ورځې په خندا په دغه ښار کې

نجونې وایي ښکاري چې شمسزیه مین شوی یې
ټوله ورځ یې ځان سره لگیا په دغه ښار کې.

# درد

غوټۍ غوټۍ شي خو موسکي نه شي ګلونه دلته
ښکاري غوړېږي نه د زړونو ارمانونه دلته

دتورې شپې تياره او درد ته خپه نه يم دومره
خو کاشکې واى دسپېده دم غونډې لاسونه دلته

وخته دخپلې بېوسۍ تصوير چې ګورمه زه
ښکاري رښتيا نه شي زما ياغي خوبونه دلته

ستا تر وصال دمخه ښه په زوره وژاړمه
تر هر سپرلي مخکې اورېږي بارانونه دلته

شمسزيه اور د نفرتونو او هوس الوتى
غواړي سكاره كړي دا ځو پاتې دېوالونه دلته.

# شاعرانه خبرې

دا به وي ګرانه څه چې ته رانه ارمانه غواړې
فصل مړه ځمکه کې د اوښکو ـ له بارانه غواړې

څو کاله کېږي پسرلی پرې غوړېدلی نه دی
خوته موسکی موسکی غاټول ـ له بیابانه غواړې

زمانې دې کې کومه پټه فلسفه پرته ده
ستومانه روح مې په بدن کې سرګردانه غواړې

ښکارې زما د سندربېزې لارې مل شوې ښکلیه
چې هره ورځ شاعرانه خبرې مانه غواړې

دښار څه خلک د هر چا په عبادت رووږدي دي
شمسزیه هسې تقدس یې له ایمانه غواړې.

# چېرته بل ځای

غوړېږي اسمان دلته او اوریږي چېرته بل ځای
په برخه مو دي شپې سپوږمۍ غوړیږي چېرته بل ځای

موږ سل خزانه ګالو دیوه سپرلي په تمه
هغه هم چېرته لاره کې تاوېږي چېرته بل ځای

عجیبه شان سلوک کړي دجانان د زلفو ولونه
زیندۍ شي زما غاړې ته خوربږي چېرته بل ځای

حیران یمه د سپینو ستورو دغه نزاکت ته
سترګک وهي تول ماته او ځلیږي چېرته بل ځای

زما د زړه انګړ ته یې غمونه رالېږلي
په خپله د جانان تصویر اوسېږي چېرته بل ځای

# د زړه خاموشه ښار

هغه هم ولاړه هک حیرانه وي چې نه یمه
بس لکه دستوري پرېشانه وي چې نه یمه

مرګه ستا له وېرې هره ورځ رانه پوښتنه کړي
بل به څوک نرېدې درته تر ځانه وي چې نه یمه

ستا د زړه خاموشه ښار زما په نوم ودان شولو
دغه پاچاهي به بېرته ورانه وي چې نه یمه

زه یم چې وفا درنه د سر په قیمت غواړمه
بیه د ښکلا به دې ارزانه وي چې نه یمه

وایي په کې زه یم چې خبرې دې غزلې دي
شعر به دې شمسزیه بې عنوانه وي چې نه یمه

# توپان

دا نن چې لکه ستوري پرېشان يو زه او ته
منزل ته تورو ورېځو کې روان يو زه او ته

راځه چې مخ ور واړوو پوښتنه ترېنه وکړو
ترڅو به زغلولي دي توپان يو زه او ته

دا خير که مو غماز ترمنځه جوړه فاصله کړه
په زړونو کې خو يو بل ته ښه ګران يو زه او ته

زه خیر ستا د ښایست غواړم ته خیر زما د سر
ولاړ د بلا مخې ته حیران یو زه او ته

یو وخت و چې د سرو گلونو غېږ کې اوسېدو
اوس سترگو کې اغزي د ټول جهان یو زه او ته

شمسزیه دمرگ کومي ته دانگل وي یوه ورځ
تر کومه به په لټه د امکان یو زه او ته.

# د بخت ستوری

ته په رښتیا چې یې دغم مقابلې ته ولاړ
د ژوند د ستړي پېچ وخم مقابلې ته ولاړ

شور کې د خپلو اسویلو راز د تخلیق لتهوې
یې د بادار د جهنم مقابلې ته ولاړ

ستا یوې سترګې نه خندا بلې نه اوښکې څاڅي
څومره ډاډه یې د ماتم مقابلې ته ولاړ

خدایزده چې چا دې د بخت ستوری نړولی ګرانه
چې خالي لاس یې د تورتم مقابلې ته ولاړ

غوښتل مې زه لکه سپرلي ستا پر زړه وغوړېږم
کاش نه وای ته مې د کرم مقابلې ته ولاړ.

# قلنگ

یا به له ښاره وځي یا به هم قلنګ ورکوي
که دا ونه کړي نو سرزوري ګواښ د جنګ ورکوي

دخپل قاتل دې هوښیارۍ ته هم حیران یمه زه
زما د قتل ارادې ته د ژوند رنګ ورکوي

څه جادوګر دی لوی واړه ورته سرونه ټیټ کړي
په همیانۍ کې یې څه شته هغه ته شرنګ ورکوي

د لښکرونو پاچا پام په ملنګانو کوه
دلته د ماتې او بري زیری ملنګ ورکوي

چې مازیګر لمر په لوېدو شي نو ټپه ټپه شم
ته وا ، څوک شته زما د زړه رباب ته ترنګ ورکوي.

# خواخوږي

څو کاله کېږي
لراو بر ګرځېدم
ما یو خواخوږی، یو جانان لټاوه
ما مې د خپلو لېونو خیالونو
هغه ښایسته ښاپېری نه موندله
چې یې تصویر زما په زړه
زما په روح کې
پروت و

اخ ښه شوه،
ځومره ښه شوه،
ډېره ښه شوه،
ما د زرينې شپې،
له سپينو ستورو،
ډک اسمان کې
ته وموندې
ما دې په سترګو کې
د خپل زړه ناځوابه
سوالونو ته ځواب ومونده
ما مې،
د خپل ژوندون،
تياره ما ښام ته،
سپينه سپوږمۍ وموندله
نو ګرانې!
څه د نېکمرغۍ شېبې دي،
راځه چې اوس د غره لمنه کې،

دنیا نه لرې خپلې تېرې،
هېرې بد مرغۍ
وژاړو

پربړده که خدای وکړي
زموږ د اوښکو سیند
زموږ پر کلي
هم سپرلی راخور کړي
او دا سپرلی

زموږ

د ټولو کلیوالو هیلې وغوړوي.

# زه او جانان

زه او جانان مې په څه چل دواړه يو ځای اوسېږو
لاس مې لنډ کړی د اجل دواړه يو ځای اوسېږو

موږ ځپل شوي د يو بل تر سيوري لاندې خوښ يو
څېرې ګرېوان او جړ وربل دواړه يو ځای اوسېږو

شپې د سپوږمۍ دي اوس د ستورو منځ کې ژوند تېروو
يو بل ته اوروو غزل دواړه يو ځای اوسېږو

زه هم شاعر يم د فطرت په شهکارونو مين
غر دې خوښېږي که ځنګل دواړه يو ځای اوسېږو

نور مو په غره کې لټوئ لکه نښتر او څېړۍ
زه او شمسزی شهل بهل دواړه يو ځای اوسېږو.

# لمبې

سپوږمۍ هم نه وه د تيارو په منځ کې پاتې ومه
بېګاه د اوښکو د ډېوو په منځ کې پاتې ومه

خود به ښايسته يې چې ګلونو سره ژوند تېروې
زه خو څو کاله د لمبو په منځ کې پاتې ومه

ته چې د ښار شوې ته هوښيار شوې زه ساده په دې چې
ولې د خپلو تورو غرو په منځ کې پاتې ومه

لاس دې په وخت رانه کړو اوس بېړۍ د امن شولې
ښه دې لیدم چې دڅپو په منځ کې پاتې ومه

هغه مهال چې دقسمت تر وزر لاندې نه وم
د ډېرو خپلو او پردو په منځ کې پاتې ومه

شمسزی چې داسې لېونی اوسودايي گرځمه
يوه شېبه د ښاپېرو په منځ کې پاتې ومه.

# د دنیا دوزخیان

خدایه دا موږه په دنیا دوزخیان؟ !
سلګونه ورځې مو،
د اوړي د تاوده لمر،
په دوزخ کې،
داسې تېرې شوې چې،
نه مو د خاورو بام لیدلی
او نه شنه اسمان کې وریځ
زموږ پر سر سیوری شو،
ښايي،
دوزخ کې به هم،
دومره ګناهګار بندګان،
خوار نه وي چې،
تنده یې وژني،
او اسمان پرې،
د یو څو څاڅکو باران ونه کړي.



# غربت

زموږ بېوسه سترګې،
پوره یو
اوړی،
د سارا له تورو کاڼو سره وژړېدې.
اوس بیا د ژمي شپې دي
زموږ بېوسه
او بې ځوکه ماشومان،
د بشریت متمدنه پېر کې،
د یخ له لاسه،
په بې بامه،
بې کړکیو،
کنډوالو کې،

په دې هيله، کنګل شوي

ناسته دي،

چې د ساړه ژمي سيليو نه

د خپل ژوندون،

ډيوه وساتي.

راځئ !

ددې پېړۍ،

د ژوند د پرمختګ نښې

زموږ ځېرو کې هم وګورئ،

ايا

نړۍ کلى کېدل

خلک همدې ته وايي؟؟ !

# مرگ او ژوند

اوس بل جانان لرمه ستا په تمه پاتې نه يم
غم سره خوښ يم د خندا په تمه پاتې نه يم

زه د ستار غوندې په خپله هم اوازلرمه
يوازېتوب کې هم د چا په تمه پاتې نه يم

هوا خو نه يم چې د واورې په خپه ورکه شم
وزر مې شته خو دفضا په تمه پاتې نه يم

دمرگ او ژوند ترمنځ يو راز دی همغه لتهوم
نور ددنيا او ما فيها په تمه پاتې نه يم

تش دومره غواړم چې تر تلو مخکې يو څه ووايې
خير که ادنی وي د اعلی په تمه پاتې نه يم

# مغروره غوټۍ

که سپرلی بیا زموږ پر کلي راغی،
نو ته پوهېږې
زه به څه کومه؟

زه به،
د خپل مالت،
تنکي، تنکي،
ښایسته گلونه،

زه به،
دخپلو تورو غرونو نه،
نازکې،
سرې او سپینې غوټۍ،
لکه پخوا غوندې راټولې کړمه،
خو دا ځل،

هغسې سودا نه کوم،
چې مې د خپل کلي
تنکي، تنکي ګلونه،
پاڼې پاڼې کړمه،
او بیا یې څوک
دکوم ظالم تر قدمونو لاندې وغورځوي
ما مې له خدای سره وعده کړې ده.
نور به،
دخپل کلي مغروره غوټۍ
ددې دنیا بې قدرو
خلکو باندې نه خرڅوم،
نور به،
د خپلو خړو غرونو
سره ګلونه،
دخپل کلي مستو پېغلو ته وړم.

# زموږ ښار او زموږ کلی

زموږ ه ښار او زموږ کلی
یو تر بله لرې،
کټ مټ، زما او ستا
ترمنځ چې د بېلتون
فاصله
کلی همدومره،
ښار نه لرې پروت دی.
نن مې له ښاره بیا تر کلي تګ و

زمونږ تر کلي پورې،
د ګاډي لس دقیقې لاره ده،
زما په مزل،
نیمه ګړۍ.
ګاډي مې نه خوښېږي،
تر کوره ټوک ټوک،
او پنځه افغانۍ هم لاړې شي.
نن مې
په دې پیسو بازار کې
دغزلو مجموعه واخیسته،
ښار نه
تر کلي پلی راغلم،
ټول کتاب مې ولوست،
نه زما نیمه ګړۍ لاره وه
او نه،
د ګاډي لس دقیقې،

بس
ټوله لار مې
له کتاب سره خبرې کړې،
نه د زاړه ګاډیوان چیغې
او نه ما لاره کې،
ګام په ګام،
حساب کړی دی،
نو ته اوس ووایه چې
ګټه مې وکړه
او که زیان مې کړی
دلس یا دېرشو دقیقو،
لاره یوه شېبه شوه،
کورته چې راغلمه،
همدغه شعر مې هم ولیکه... !

# جنگ

خدایزده کوم لور ته روان یو خبر نه یو
اوس په غبږ کې د توپان یو خبر نه یو
د رڼا او د تیارو په منځ کې اوسو
لکه وربځې سرگردان یو خبر نه یو

جادوگر وخت په موږ داسې کوډې وکړې
اوس مو یو بل ته لاسونه نه اوږدېږي
فاصله زموږ تر منځ ده ډېره کمه
خو دا زړونه مو د لمر غوندې ډوبېږي

دیو بل سترگو کې ډېر رازونه وینو
خو کوڅو کې اوس پاچا قاتل ماښام دی
هر گلاب خپلو اغزیو باندې وژني
دښکلا ددښمن هرې خوا ته پام دی

که ددې یاغي توپان غرور مات نه شي
دهېچا ببړۍ به بچ نه پاتې کېږي
فریادونه به یې ټوله نړۍ واوري
وار په وار به دا ښارونه ټول نړېږي

عظمت به انسان تر خلي سپک شي
هر سړی به تش د خپل هوس غلام وي
دسکې پر یوه مخ انځور د سولې
په بل مخ به یې تصویر د قتل عام وي

که دا جنګ د عقیدې که د ټکې دی
خو چې مخې ته یې سرونه پورته نه کړو
دا خپې به د غرو څو کو ته هم خېژي
که جنډو غوندې لاسونه پورته نه کړو.

# زموږ د ژوند پاڼې

لکه د ونو
دا تنکۍ پاڼې،
چې،
څانګو کې وټوکېږي،
شنې شي،
او د وخت په تېرېدو يې
بڼه ژېړه شي،
ترپ،
ورژېږي.....
موږ هم کټ مټ داسې يو.
دنيا کې،
وزېږېږو،
وغوړېږو،
لا مو يو بل سره په ډکه خوله،
خندلي نه وي،
چې مرګی راشي
او د ژوند پاڼې مو ورژوي....

## اوس هم په باد مین یم

زه لا هماغسې یم،
اوس هم په باد مین یم،
اوس هم،
تمام اوړی، په بام وید یږم،
اوس هم،
د پلارپه زنګېدلي،
کټ کې،
ټوله شپه،
اسمان سره خبرې کوم.
زه لا هماغسې تمامه شپه،

له ستورو سره مینه کوم
زه لا هماغسې،
د ستورو په مرگ،
چیغې وهم،
کړیکې کوم،
ځان سره ټوله شپه تیارو ته،
بدې ردې وایم،
څه عجیبه، سړی یم
زه مې،
د مور،
دروغ، رښتیا
خپلو،
کوچنیو ماشومانو ته
میراث کې پرېږدم
بس چې ماښام شي،

نو
دخپلې مور
یوه، یوه کیسه راواخلم،
زامنو راشی !
لورکۍ راشه،
ښه نږدې پربوځئ،
هغه دی وګورئ
اسمان کې،
هغه کټ وګورئ ،
هغه څو ستوري ښیم،
تاسې لږ چوپ شئ !
دمورجانې،
یوه خبره مې رایاده شوله
مور به مې هر ماښام کیسې کولې
زه چې ماشوم وم
مابه ټوله شپه اسمان ته کتل
مور به مې ویلې:

چې زامنو !
دا اسمان،
تر ځمکې ډېر ښايسته دی.
هغه دی ښه وګورئ،
هغه څو ستوري
چې يو ځای راټول دي،
هغه يو کټ دی،
يو زمری دی
او د کټ پښه کې اوزه تړلې
هغه دی ښه وګورئ،
زامنو وګورئ،
اسمان
تر ځمکې،
ډېر ښايسته دی.
هلته يو لمر دی
يوه سپوږمۍ ده،
او يوه ګله دستورو ښکاري

هغه دې وګورئ
په خپلو سترګو

چې سپوږمۍ
څومره ښايسته ده،

او په منځ کې يې،
څېره ده

څومره ښکلې ښکاري!!

مور به مې
دلته لږ څه چوپه شوله
مور به مې غلې شوله،
ښايي څه وېره
به يې زړه ته راغله،
خو مور به بيا لکه چنچڼو
شور ماشور جوړ کړ
چې مورې!
ګرانې مورې،
دا ته ولې داسې غلې شولې؟

موري، خبرې کوه !
موري سپوږمۍ کې نو دا څه دي
چې موږ نه پوهېږو،
مور به مې بیا
غاړه تازه کړه
او زموږ ماشوم
خیالونه به یې
ځان سره اسمان ته بوتلل
هغه ده ښه وګورئ
هغه سپوږمۍ ده
او په منځ کې یې
سپېڅلې ملایکه ناسته
تاسې ته ښکاري
او که نه
تاسې لږ ښه وګورئ
هغه چې تت ښکاري
هغه درښیم

هغه سپېڅلې ملايکه ده
په لاس کې يې زرينه شپېلۍ
داسې شپېلۍ
چې،
په اواز به يې دنيا لړزېږي
مور به مې بيا
لږ ټکنۍ غونډې شوه
مور به له ډېرې تلوسې نه
يو ځل بيا
مور ته په چيغو چيغو وويلې
مورې !
خوږې مورې
کيسه کوه رښتيا چې
دا اسمان
تر ځمکې ډېر ښايسته دی
مورې راځئ چې مور هم
اسمان ته کډه وکړو

مور به مې کټ کټ
په خندا شوه،
او په موړ به راخوره شوه
او یو یو به یې پر سرښکل کړو
بیا به یې ویلې:
نه، نه، بچیانو
انسانان
اسمان ته کله تلی شي
اسمان ته
لار د ختو کله شته دی
اسمان د ستورو ځای دی
اسمان ته هغه څوک ورتلی شي
چې یې زړونه لکه لمر
لکه سپوږمۍ
لکه لیلا
لکه مجنون صفا وي
اسمان د مینې ځای دی

موږ انسانان يو
موږ د ميني په چل نه پوهېږو !!!
موږه د ځمکې په سر ټول عمر
له يو بل نه نفرت کړی دی
موږ ته
اسمان په خپله غېږه کې
ځای نه راکوي
بچيانو غلي شئ
ويده شئ
چې اوس لمر راخيږي.....

# ماشوم کاته

نن دې ماشوم ماشوم کتو ته حیران پاتې یمه
بس د الله پاک قدرتو ته حیران پاتې یمه

دچا تر زړه تلل که اسانه وي نو ګرانه هم وي
دجانان سترګو غلچکو ته حیران پاتې یمه

دغه رڼا زما شعور ته کومې خوا نه راغلله
ډېره تیاره وه دې سپېدو ته حیران پاتې یمه



ځای د پښتو چې شي سکروټه په ورغوي کې وړي
زه دې شډلو پښتنو ته حیران پاتې یمه

تمامه شپه مې په لمن کې لکه ستوري ګرځي
دخپلو اوښکو سلسلو ته حیران پاتې یمه

په مستۍ راشي زما خیال کې ټپې وتښنوي
ترنګ د رباب شرنګ دبنګړو ته حیران پاتې یمه

# اجل

دا خو دې بیا زما خوښیو ته اجل راوړی
زموږ د رنګ کلي په څېر دې رنګ وربل راوړی

نه لرم څه چې دې ډالۍ کړم پښتنې ښایست ته
جانانه واخله یو مې زړه یو مې غزل راوړی

راځئ چې پرانیزو ـ له ملا یې د مرمیو چانټه
چا یو تنکی زلمی ساتو ته د مورچل راوړی

د زړه وطن مې د تنکو هیلو په وینو ساتم
که نه وحشي غمو پرې څو ځلې یرغل راوړی

ښایي چې ته مې هم اړ شوی یې غلام زړګي ته
چې دې بادار حسن غلام ته په درشل راوړی.

# کاینات

څه مینه ګرکي کاینات دي
څومره ښکلی ژوند دی
تمامه شپه
ستوري، سپوږمۍ
راسره مینه کوي
چې سپیده دم شي
بلبلان راته

خوږې خوږې نغمې غږوي
او باد
ورو ورو
د تنکو ونو پاڼې ونڅوي
سهار کې لمر
په خپلو تاندو
او نازکو طلایي ګوتو
زما بدن لړ وتخنوي
چې مخ ور واړوم
په سترګو کې موسکی وي
تر ما مخکې
راته ووایي
سهار دې په خير.

# انتقام

له بل چا نه‌ـله خپل ګرېوانه انتقام اخلمه
ددې بايللي جنګـــله ځانه انتقام اخلمه

ددې بازار په سوداګرو مې لاس نه برېږي
له خپل بېوـسه شان ارمانه انتقام اخلمه

چې ستـرګې مـړې واړوې اور مـې پـه زړه ولـګوې
يـو ورځ بـه ستـا لـه دې حيـا نـه انـتـقـام اخـلـمـه

اوس دې په لاس کې د ښکلا هغه رنگونه نه شته
اوس مې زړه نه کېږي چې تانه انتقام اخلمه

لېونی فکر غولوم ژړا کې وخاندمه
په دغه چل ستا له سودا نه انتقام اخلمه

دښتو کې وایمه سندرې ښار کې غلی گرځم
هره ورځ داسې له دنیا نه انتقام اخلمه.

# د زړه زلزله

لامې فکرونه غولوم لا دې د ځان ګنمه
لا دې نغمو کې یادوم لا دې جانان ګنمه

خدایزده چې څه مې زړه ته راشي زړه مې ولړزوي
زه خو د زړه زلزله وېره د ایمان ګنمه

پرېږده له سترګو مې څپې د اوښکو وبهېږي
زه بارانونه پېرزوینې د اسمان ګنمه

وخت که ماښام وي که سحر خو چې بېلتون راولي
غماز که تور وي او که سپین زه یې شیطان ګنمه

ته وایه بس دی شو ترسره دې ارمان شمسزیه
زه وایم نه، زه خو نیمګړی خپل ارمان ګنمه.

# زخمي کلونه

نه مې هغه خوږې کيسې او نه مې شپې هېرې دي
نه مې سپرلي کې د بلبلو ترانې هېرې دي

د ښار کوڅو کې هرڅه شته اشنا غږونه نه شته
ځکه مې وينو نه پخوا غوندې جذبې هېرې دي

اوس مې هم ياد دي د خپل تېر عمر زخمي کلونه
گومان ونه کړې چې له مانه ستا وعدې هېرې دي

چې په نغمو يې لوبول د ولو شنه ښاخونه
اوس کليوالو نه دسيند مستې ثپې هېرې دي

وختهـله تا سره زما لوبه لا ختمه نه ده
لږ صبر وکړه ما نه خپلې ارادې هېرې دي

شمسزيه شته مو لا په زړه کې د ايمان بثره
خو تشـله موږ نه د احساس بلې لمبې هېرې دي.

# دگورگرو بازار

د لېونيانو دخبرو بازار وگوره اوس
د ببرسرو قلندرو بازار وگوره اوس

چې په يوه ټنگه به نه اخيست چا دې کلي کې
زموږ د اوښکو مرغلرو بازار وگوره اوس

هغه زما د بولۍ غرو چې اسمان ته جگ شوې
راځه د خپلو سوداگرو بازار وگوره اوس

څنگه دې اخيستې له موږ نه د سکرو په بيه
زموږ د غرونو د نښترو بازار وگوره اوس

سږ کال باران وشو دغرو لمنې وغوړېدې
راشه پکتيا ته د گورگرو بازار وگوره اوس.

# شک

نږدې که نه وي له هېڅ نه دومره لرې نه دی
په تا مین ګوره له تا نه دومره لرې نه دی

خیر لېونی به نه یم یاره خو ستا شک منمه
زموږه کور هم له بېدیا نه دومره لرې نه دی

چا ویل زما لاس د سپوږمۍ تر زلفو نه رسېږي
دغه خبر خو له امکانه دومره لرې نه دی

مینې دې څومره لوی کمال وکړ شاعر یې کړمه
اوس مې هنر ستا له ښکلا نه دومره لرې نه دی.

# د میني لاروي

کله ځان سره په جنګ یو کله خپلو کې پخلا یو
نه خبر په ابتدا یو نه خبر په انتها یو

مونږ د میني لارویو سل ترخه جامونه څښلي
دلته سل ځله مړه شوي یو او سل ځله پیدا یو

په بدل کې یې له خدایه دې وطن ته سپرلی غواړو
لوی واړه چې لکه وریځې په سلګیو په ژړا یو

دا منم درسره مونږ د غرو او دښتو ساده خلک یو
خو ظاهر او په باطن کې ائینې غوندې صفا یو.

# د ښایست قدر

جـانـانـه ژونـد دی چـا تــه ژاړم چـا تــه وخـانـدمـه
تـیـاره کـې نـاست یـمـه خـپـه، رڼـا تـه وخـانـدمـه

سـتـا د ښـایسـت قـدر بـه یـاره دومـره بـس وي کـه نـه
چـې سـتـا د هـر ظـلـم بـدل کـې تـاتـه وخـانـدمـه

دشـپـې شـبـنـم غـونـدې اورېـږم پـه گـلـونـو بـانـدې
سـهـارکـې سـتـوری شـم فـانـي دنـیـا تـه وخـانـدمـه

چې ماته ګوري لږ موسکۍ شي سترګې مړې واړوي
زړه کې مې پټ د جانان دې جفا ته وخاندمه

زموږ دکلي منځ ته راشي بل ته لاس ورکوي
له ډېره غمه د یار دې سزا ته وخاندمه

دمینې زور دې اوس تر دې حالته راوستمه
له مجبورۍ دې هرقاتل ادا ته وخاندمه.

# د جذبو غوندې خبرې

هغه چې ته به یې ګوابنلې اوس دې خیال هم کوي
ته چې راځې ستا د راتلللو استقبال هم کوي

داسې وخت راغی فرق د دوست او د دښمن نه کېږي
دلته دې وژني هلته ستا د ژوندون سوال هم کوي

څه زورور دي ښکلي هرڅه کې چېړ خوند ورکوي
په رښا ورځ درنه زړه پټ کړي بیا جنجال هم کوي

ډېر شاعران به د ښکلا له ښاره تش لاس وځي
که څومره ذکر دبېلتون او د وصال هم کوي

شمسزی چې څه وایي جذبو غوندې رښتیا یې وایي
که نه خبرې خو د تور بازار دلال هم کوي

# د غم لمر

لرې ولاړ وم د ورتللو په چل نه پوهېدم
رښتيا به وايمه دښکلو په چل نه پوهېدم

فکر مې نه و سين د سترګو کې يې پرېوتمه
بيا نو تر ډېره د وتلو په چل نه پوهېدم

ستا انتظار کې غلی ناست وم ستا په خبر نه ومه
زه د وعدې د ماتولو په چل نه پوهېدم

ته رانه لاړې زه دې داسې ځای کې پرېښودمه
چېرته چې زه د اوسېدلو په چل نه پوهېدم

شمسزيه دې کلي کې هغه د غم لمر ومه زه
چې ماښام هم د پرېوتلو په چل نه پوهېدم.

# راز

زما ژوند ښکاري
کوم راز دی
او
څه راز شته زما ذات کې
زما ورځې
شپو کې ورکې
او شپې ټولې
په فریاد کې
دا ټکرې
چې خورم ښکاري
زما لاس دی د چا لاس کې
پته هېڅا ته هم نه شته
پټ مې څه دي په وسواس کې
رقیبانو ته مې وایئ
چې په خپل حال مې لږ پرېږدي
یوه ورځ به دا ښار لولي
څه ضرور زما په یاد کې.

# زه هم د ګل په شان وم

له ځانه درته ګران وم یو څو شپې ورځې مخکې
زه هم دا ستا جانان وم یو څو شپې ورځې مخکې

راپرېوتم ـله برمه د چا د سترګو ښکار شوم
یو ستوری د اسمان وم یو څو شپې ورځې مخکې

چې سره ګلونه وینم په خیال کې مې را ګرځي
زه هم د ګل په شان وم یو څو شپې ورځې مخکې

دا هم د وخت ګردش دی چې هېر شومه ـله خلکو
موضوع د هر داستان وم یو څو شپې ورځې مخکې

اوس هره ورځ راځې خو زما زړه کې ځای نه شته
ددې کار په ارمان وم یو څو شپې ورځې مخکې.

# دروغ

بلا دروغ غلي دي ستا د سوګندونو شاته
لکه اغزي چې چوپ ولاړ وي د ګلونو شاته

زما او ستا د راز خبرې ښار ته ووتلې
ښکاري څوک پټ و ددې خړو دېوالونو شاته

داسې یو وخت و چې نغمې زما په نوم جوړېدې
اوس نو یادېږمه د اوښکو دسیندونو شاته

ستا د خندا تر شا د غم د پاچاهۍ تصوير دی
توره تياره ښکاري د ستورو د مخونو شاته

چاچې زموږ له بېوسيو سره لوبې وکړې
پټ د خدای قهر و زموږه د اهونو شاته

شمسزيه ستا تر کوره دومره ژر راتللی نه شو
د چا پوکی و د لمبو او د اورونو شاته.

# د بابل جادوگر

وروسته تر دې درسره داسې رقابت کومه
ته له ما کرکه کوه زه به محبت کومه

تاته به ښه ښکارېده زه دې له زړه وويستمه
خو زه پښتون يمه د خپل مېلمه عزت کومه

په خپله خوښه زه د ګل په دام کې ونښتم
څه ضرورت دی چې به چا ته شکايت کومه

زما د سپينې تورې مخې ته بېوسه شولو
دسر دښمن سره مې ځکه شرافت کومه

دجانان سترګو کې اوسېږي د بابل جادوګر
شمسزيه نور ترېنه په زغرده بغاوت کومه.

# ګونګې کرښې

زما او ستا راز دې زما او ستا په زړونو کې وي
هره موضوع نه کوي خوند چې کتابونو کې وي

ته دې لاس راکړه چې دا ګونګې کرښې ولولمه
که څه زما او ستا په باب ستا په لاسونو کې وي

چې سترګې پټې کړمه هر څه رانه لرې تښتي
یوازې ستا غم مې ملګری په خوبونو کې وي

زه چې په کومه وینا خلکو ښار نه وویستمه
سبا به دا د وخت په ټولو نصابونو کې وي

اوس هغه خلک هم زموږه د پښو پل ورانوي
هغه چې غلي ناست زموږ په محفلونو کې وي

شډلو خلکو کې موندلی شې ګوهر د وفا
شمسزیه څومره قیمتي کاڼي په غرونو کې وي.

# خرابې

ته چې موسم غوندې ساعت کې بدلېدې جانانه
سهوه دې وکړه چې زما زړه ته راتلې جانانه

زه که اغزی یم نو لمن دې رانه لرې ساته
که زه ګلاب یمه وربل کې به مې ږدې جانانه

هېڅ پروا نه کړي چې سپوږمۍ او لمر مې واک کې نه دي
دا به وي ډېره چې زما دي ورځې شپې جانانه

ته لکه سیند یې سم او غر ستا د رضا تابع دي
خوښه دې خپله ده په کومه خوا چې ځې جانانه

پوهېږم نه چې دا شهرت که رسوایي ده زما
هر چېرته شته زما د مینې اوازې جانانه

شمسزی خړ پړ دی خو په زړه کې مینه ډېره لري
په خرابو کې پیدا کېږي خزانې جانانه.

# غمجنه رخصتي

پرون جمعه وه رخصتي وه گرانې
ما مې د خپلې کوټې ور
ځان پسې وتړلو
غوښتل مې تاته
پس له ډېرو مودو شعر ولیکم
خو شعر؟ ! !
شعر هم تا غوندې
مغروره ښاپېرۍ ده گرانې
شعر په کومه ورځ چې زه لټوم
نه یې وینم

پرون جمعه وه رخصتي وه ګرانې
ما مې د خپلې کوټې ور
ځان پسې وتړلو
غوښتل مې تاته
پس له ډېرو مودو شعر ولیکم
خو شعر؟ ! !

شعر
ونه لیکل شو
زه مې،
د خپلې الماری
مخې ته ودرېدم،
زړه مې و داسې یو کتاب پیدا کړم
چې مې،
د خیال ښاپېرۍ،
وتښنوي ویښه یې کړي
خو ته پوهېږې ګرانې؟ !
زما په ډکه الماری کې لاس

پر هغه ډايرۍ ولګېد
زما .له کومې ډايرۍ نه چې ته
وېره لرې
زما .له کومې ډايرۍ نه چې ته،
کرکه لرې
باور دې کېږي که نه؟
چې ته مې ياد شوې
زه مې هم
له خپلې تورې ډايرۍ نه
لږ څه ووېرېدم
لاس مې راکش کړو
خو په دې شېبه کې ترپ شو
ډايري پر ځمکه پرېوتله
د ډايرۍ منځ نه،
د هغه وچ ګلاب
پاڼې هم تويې شولې
چې مې تر اوسه هم

ددې ګلاب ښـتـن لا پـېژندلی نه دی
اخ !
دا ګلاب خو رانه ورژېده
ما ویل چې
زه به دا ګلاب،
تـر ډېره عـمره سا تـم
ما ویل چې
زه به یې
ښـتـن تـه،
دګلاب بدل کې زړه ورکوم
اخ !
دا مې څه وکړم؟
دا ولې وشول؟
پـه خدای باور وکړه
چې ډېر خپـه شوم
لاس مې ور وغځاوه
مات ګلاب مې
بېرتـه ډایرۍ کې کېښود ،

او ډایرۍ سره

ورو ورو

د رڼا خوا ته راغلم

اوس مې نو وغوښتل

د تېر ژوند پاڼې،

یو پربله واړومه

اه ! دا څه دي؟ ! !

[ما ته یادګار ولیکه]

ما په غیاب کې

ستا له شعر سره مینه کړې

ما مې و ذهن کې

دا ستا خیالي تصویر جوړ کړی

ښه شو چې ومې لیدې

ما ته یادګارولیکه.....

دا مې،

د هغې ډایرۍ،

د لومړي مخ
کرښې وې
هغه چې ته اوس،
ترېنه کرکه لرې
هغه چې ته اوس،
پرې نیوکه لرې
تر لږ سوچ وروسته مې،
ددې ډایرۍ،
نورې پاڼې واړولې
اوهو !
دلته خو هم
دا ستا په لاس
لیکلي توري شته دي
دا نو پوره دوه میاشتې وروسته
لیکل شوي
هغه توري دي چې:
زه او ته درې ورځې خپه وو

ځلورمه ورځ
په سترګو کې،
موسکۍ شوې راته
غلې دې ځان سره،
دا شعر وویل
نه مې ته شې هېرولای
نه زما له خیاله وځې
ځه پخلا به شو جانانه
زه هم ستړی ته هم ستړی
په خدای باور وکړه،
چې:
ډېره ځوروونکې شوله
زه مې،
له خپلې ډایرۍ نه رښتیا ووېرېدم
ما ته مې خپله ډایري
ورکې شېبې یادوي
زه نور د خپلې ډایرۍ

پا ڼو ته نه شم لیدای
ورو مې د خپلې ډایرۍ وزرونه وتړل
او بنده مې کړه
په سوچ کې لاړم،
پر ځای وغځېدم
اوس نو خوب هم نه راځي
او شعر هم رانه غی
جیب ته مې لاس کړ،
چې سګرټ وباسم
ویې څکم
یوه شېبه پر دې تېره کړم
سګرټ مې ولګاوه
ما د سګرټو دلوګیو ننداره کوله
په همدې خیال کې وم
یو سپین مړوند را وغځېده
غوښتل یې خپلې تنکۍ ګوتې
د سګرټ په انګار وسوزوي

څه کوې؟
څوک يې؟
اف؟؟ !
د سگرټو ځکل دې نه خوښېږي؟؟
ما ـله دې وېرې
چې غيبي مړوند دې اور وانخلي
سگرټ د باندې وار کړ
بيا مې د خپلې
ډايرۍ پاڼې راواړولې
اه !
څه غمجن انځور دی ! !
دا څه ترخه توري دي
په ډايرۍ کې مې
له دې نه وروسته،
هېڅ هم نه شته
فقط پنسل باندې جوړ شوی
يو تصوير دی

چې يې پورته دي جوړه لاسونه
دغه زما د ډايرۍ
هغه وروستۍ توري دي
چې په وروستي ورځ ته خپه شولې
او دادې وويل:
زه نور هېڅ‌چا سره،
نه شم جوړېدلای
اخ !
دا مې څه وليدل؟
دا نيم بيتي،
او دا جوړه لاسونه !!
ما خو ويلي وو
ددغې ډايرۍ کرښو ته نه گورمه
اخ !
دا مې ولې واخيست
بېرته مې خپله ډايري
په الماريۍ کې کېښوه

او الماری نه مې
دویم ځل،
د کتاب پر ځای
راډیو واخیسته
ورک یې کړه
نور د کتابونو پاڼې نه لولمه
د هر کتاب لفظونه ماته
خپلې تېرې خاطرې یادوي
او زه
دتېرو خاطرو تصویر لیدلی نه شم
دا راډیو ډېره ښه ده
غوښتل مې دا ځل
په راډیو پام بلې خواته یوسم
راډیو مې ولګاوه
له لګولو سره سم
زما راډیو کې دا سندره راغله
زه نور هېڅ سره نه شم جوړېدلای

که نه ځومره ځومره ښکلي دي جانانه
اخ په راډیو کې هم
هماغه غم دی
دچالـه لاسه،
چې ما خپله ډایري پټه کړه
زه نور لـه دې کوټې نه لرې تښتم
تر دې کوټې پورې يې هم
غـيبي لاسونه رسي
تر دې کوټې پورې يې هم
پټ اوازونه راځي
زه نور
لـه دې کوټې نه لرې تښتم
زه نور
په خپلو رخصتيو کې صحرا ته ځمه ! !

# ازادي

زموږه غرونه توپان (۱) نه پېژني
زموږ ه غره ته چې ښامار(۲) راشي
نو تور کاڼی شي

زموږ شملې
زموږ گامونه
په وحشي سيليو (۳) نه کړېږي
ما او دې غره ته
پورې سيند

هغې کوچۍ

دغې شپېلۍ

پېړۍ پېړۍ

دغیرتونو ترانې ویلي دي

موږه ټول عمر

ددې لوړو غرو ګټونو ته

په وږي نس

دعشق او ازادۍ مستې ټپې کړې دي

دا غرونه نه ایلیږي

دا غرونه نه نړیږي

توپانه لاره کړوه

زموږه غرونه توپان نه پېژني !!!!!

# ټيليفون

ډېره موده وروسته دې
غږ په ټيليفون کې اورم
تا خو ويل:
زه مينه ناک څښتن،
له مينې جوړه کړې يمه
تا به ويل:
زما زړګی،
د مينې کور دی
د نفرت شپه په کې نه تېرېږي

نو ګرانې !
دا یوه پوښتنه کوم
دا دومره وخت تېر شو ،
نه لیک
نه ټیلیفون
نه دې ایمیل رالېږه
زه خو حیران یم
چې ستا زړه کې
دا لوی غر د کرکې څنګه ځای شو..؟؟

# کلی

څه موده مخکې نه جنګ و، نه جګړه وه
دا مو کلی دا مو کور دا مو دېره وه
شنه طوطیان وو ګرځېدو په چنارونو
هسکو هسکو شنو درو کې به مو شپه وه

په دې پورې غره به ټوله ورځ باران و
نڅېدل به یې لمنو کې ګلونه
دسین منځ کې سپینې زانې ګرځېدلې
اورېدل نه پرې له پاسه سره اورونه

هره ورځ به راپرېوتې ښاپېرۍ وې
د چینې غاړه به ټوله رنګینه وه
چا خوړل د چنار ځانګو کې ټالونه
چا به لاندې جوړه کړې ننداره وه

لـږ څـه وړانـدې شـنـډه ونـه پـښـوانـۍ وه
پـه کـې ځـوړنـدې وې ځـالـې د مـرغـیـو
خـو تـرې لانـدې دبـابـا ټـوخـی ژونـدی و
چـا یـې نـوم اخـیـسـتـی نـه شـو د بـچـیـو

هـغـه پـورې نـرېـدلـی زیـارت ویـنـې
اوس یـې نـه ښـکـاري ګـنبـدو کـې کـوتـرې
انسـانـان وو خـو بـیـا سـتـوري د اسـمـان شـول
هـره شـپـه بـه پـر دوی شـمـعې بـلـېـدلـی

ددې کـلـي کـه خـانـان کـه مـلـنـګـان و
یـو تـر بـلـه د زاړه چـلـم یـاران و
پـه یـو ډنـګ د نـغـارې بـه سـره غـونـډ شـول
کـه بـه غـږ د خـوشـالـۍ کـه د خـپـګـان و

دملا او د سپینږیري پرې امین و
فیصله که د جومات که د حجرې وه
دننګ کار کې به یې وینې جوشولې
که ټپه د لوپټې که د شملې وه

ددې کلي که ملا و او که رند و
ژوند د سولې، سوکالۍ یې لوی ارمان و
تصور د بېلتانه چا سره نه و
ټول سکه بچي د یو افغانستان و

دا اوس هم هماغه کلی هاغه قام دی
زوړ ملا د همغه ممبر امام دی
هره ورځ وینه په وینو مینځل کېږي
رڼا ورځ یې په خپل ځان باندې ماښام دی

د نفرت زړی هر زړه کې کرل کېږي
په هر سر پردي فکرونه تپل کېږي
خنجرونه پټ لاسونو کې ځلېږي
که څوک سوچ کړي دیووالي وژل کېږي

هغه څوک چې د الوت لري وزرونه
هغه الوزي او پرېزدي شاته غرونه
هغه نور چې ځواک یې نه شته او خواران دي
په یوه خیټه ډوډۍ جنګ ته روان دي

د چینجو په شان په خپل منځ کې خوړل کړي
شعارونه یې دي خپل خو کار د بل کړي
مشران یې ټول دخپل بادار په امر
هم ګوابل کړي، هم تړل کړي هم وژل کړي

# باران

څه ښه د باران څاڅکي شي پيدا په ترنم
ژوندي په ترنم شي، ورکړي سا په ترنم

نښترو ته د غرونو اسماني سندرې وايي
زمرې درو کې ګرځي تل هوا په ترنم

ته شرنګ د شنو بنګړوکړه، زه به خرپ د سپېنې تورې
ګټو به که خدای کاندي هر غزا په ترنم

زموږ د چم د نجونو له پښتو نه دا عادت دی
ښېرې په ترنم کوي، دعا په ترنم

پیغام دې سندریز کړه چې فکرونه ورته ګډ شي
له تورو تیارو وباسه دنیا په ترنم

شمسزیه د جانان له زورور سوګنده تېر شوم
توبې مې واړه ماتې کړې ببګا په ترنم

# سپرلی

څو ورځې سپرلی شي بېرته بیا هوا بدله شي
شپې اوږدې اوږدې شي ددنیا فضا بدله شي

یاره ستا دا زړه خو لا تر اوسه هم په باد رېي
لږ وخت کې دې څو ځلي ژړا خندا بدله شي

سیوری د ګناه دې د ځېرې رښایي تته کړي
ته چې دروغ وایې ستا د مخ رڼا بدله شي

خدایزده دا به ولې! نوم د غله خاین چې اخلمه
بس د ځینو خلکو د ځېرو ځلا بدله شي

# اوښکې

ستا په سترگو کې دي اوښکې زما زړه کې زلزله ده
يــوه وېــره درپــســې ده يــوه وېــره راســره ده

ستا تر سترگو خو زه راغلم اوس مې زړه پورې ته بوځه
لـويـه لاره مـا وهـلـې، پـاتـې لـنـډه فـاصـلـه ده

تـه خو لـمر يې تـا د تـورو تـيـارو درد لـيدلی نه دی
لړماښام‌نه وروستـه راشه چې دا شپـه څومره ترخه ده

بس کړه بل ځای کې بيا وايه دا غزل د ژوند او مينې
په دې ښار کې امن نه شتـه ددې ښار برخه سپېره ده

# همزولي

ما څه ویلي تا منلي وو را یاد شول راته
والله له یاده مې وتلي وو را یاد شول راته

دمحبت سزا يې نیم عمر بېلتون راکړله
یوازې ویښې شپې لیدلي وو رایاد شول راته

سپوږمۍ له ما سره د درد زړه رشته وویسته
ستورو له ما سره ژړلي وو را یاد شول راته

یو غږ مې واورېدو ناڅاپه مې څه زړه کې تېر شول
کټ مټ یو څه مې اوریدلي وو رایاد شول راته

شمسزیه زه یمه او زه یم، بیا هم زه یم ښار کې
څه ښه همزولي مې د کلي وو رایاد شول راته.

## مرگ

دا هم ډېره سخته وه چې زه له تانه لاړمه
سا دې د وجود ومه خو اسانه لاړمه

ستا په بېلتانه کې مې مرگ سترگو ته راغلی و
هر ساعت به ما ویل چې اوس له ځانه لاړمه

خوښ یم چې د چا د ارمانونو قاتل نه یمه
دا به مې لوی ویاړ وي که له دې دنیا نه لاړمه

زه لکه غریبه اوښکه هېڅ چا را ونه کتل
څاڅکی، څاڅکی، څاڅکی تر زخمي گرېوانه لاړمه

تا راته پټ پټ کتل ما سترگې اړوی نه شوې
بله چاره نه وه اخر زه حیا نه لاړمه.

# يارانه

چا چې ساتلم د ملګرو له پرې نه لرې
هغه اوس ځان ساتي زما له يارانې نه لرې

مور لېونو سره که مينه کوې شرط يې دادی
زړګی به ساتې په منګول کې له سينې نه لرې

اوس داسې وخت دی څوک د چا د زړه درد نه خپلوي
رښا يې خوښه وي ځان ساتي له دېوې نه لرې

خير دی ما ښکار کړه خو ذليله مرګ مې نه خوښېږي
د دام کړې دې کړه ځوړنده له دانې نه لرې

# مننه او کور ودانی

له ښاغلي صدیق کاوون توپاني څخه د زړه له کومې مننه کوم چې زما د ژوند پر پاڼو یې هم خپل نظر ولیکلو او هم یې د چاپ د لګښت په ورکولو سره ددغو پاڼو ټولګه تر تاسې در ورسوله، کور یې ودان خدای (ج) دې ورته اوږد عمر ورکړي.

په درنښت

شمسزی